# د اسلامي دولت ولاية خراسان پيغام


الشيخ المجاهد عبدالحسيب حفظه الله

الشيخ المجاهد أبوعمر الخراساني حفظه الله


7 جمادي الثاني 1436

28 مـارچ 2015

8 حمل 1394

# بسم الله الرحمن الرحيم

## مقدمه

الحمد لله الذی جعل آدم فی الارض خلیفة و أرسـل رسـلا مبشرـین و منذرین لیسوسوا الأمم فی أمور الدین والدنیا والصلاة والسلام علی رسول الله الذی قال من مات و لیس فی عنقه بیعة مات میتة جاهلیة وعلی أصحابه الذین هم أسوة حسنة لمن کان یرجوالله والیوم الآخر ومن یتول فإن الله هو الغنی الحمید.

اما بعد: له ډیرې مودې نه اسـلامي امت یتیم شـوی و، ډیر ظلمونه او کړاوونه یې ولیدل، په اورونو وسـوځول شـو، له کورونو وویسـتل شو او دا ظلم پر دوی د یوه اشر په توګه ترسره شو، چې په دې اشر کې دنړی هر سـتمګر او یرغلګر ونډه لرله او هرچا پرې د خپل زړه یخولو هڅه کوله.

خو الحمدلله ثم الحمدلله اسـلامي امت لا هم داسـې با احسـاسـه بچي لري، چې د امت پر سـر ځوریږي او د امت د ټولو دردونو لپاره مرهم ګرځي، د نړی د ټولو زور واکو او ظالمو قوتونو پرضـد دغه با احسـاسـه او ویښـو مسـلمانانو په ډیرو کمو اسـبابو او حتی تش په لاس د جهاد غږ راپورته کړ، ویده زړونه یې راویښ کړل، نـاهیلي زړونو کې یې د هیلو غوټۍ راوټوکولې، دښـمن یې وارخطا او له پښـو وغورځـاوه؛ خو داکـار یې د مختلفو ګروپونو او تنظیمونو پـه بڼـه

ترســـره کړ او تردې حده يې دا ســـتر مســـئوليت او بې مثاله مبارزه راورسوله.

دا چې له مودو مودو نه د جهاد مقدس حکم مړ شـوی و؛ نو په دې زمانه کې د جهاد غږ پورته کول د جهادي مشـــرانو او قائدينو لپاره يوه لويه بريا او د سپين سباوون په لور ستر ګامونه ول، چې د اسلام په تاريخ کې يې په تيره سليزه کې پورته کړ، د دوی په حق کې دا ډيره غټه خبره وه چې په نړۍ کې د جهاد بيرغ پورته کړي او په ګروپي او تنظيمي ډول خلک جهاد ته راوپاروي او موږ يې شـــکر اداء کوو؛ خو اوس د رواني ســـليزې لپاره داســـې مجدد پکار وو، چې د نړۍ ټول جهادي جماعتونه په يوه صـــف کې راټول کړي او يوه بيرغ او يوه قيادت لاندې د نړۍ کفارو ته مرګونی ګذار ورکړي، څکه په اسلامي شريعت کې د جهاد او قربانيو هدف دا دی چې مسلمانان واکمن شي او اسلام ته په ټولو دينونو تمکين او ظهور حاصل شي، لکه اللهسبحانه وتعالی د رســـول اللهصلی الله عليه وسلم د رســـالت همدا مقصـــد ښـــودلی، اللهعزوجل فرمايي: (هُوَ ٱلَّذِي أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡمُشۡرِكُونَ) [سورة التوبة ٣٣]

**ترجمه**: الله تعالی هغه ذات دی چې خپل اســـتازی (رســـول) يې د همدې لپاره پر ســـمه لاره او له حق دين ســـره راســـتولی چې همدا

هدايت او حق دين پر ټولو دينونو سـر لوړی، ظاهر او تمكين والا وګرځوي، که څه هم دا کار مشرکان نه خوښوي.

اوس که په ګروپي شـکل جهاد كولو سـره دا تمكين تر لاسـه کيده، که په تنظيمي شکل يې امکان وو، او که د يوه تن په قرباني سره دا تمكين حاصليده؛ نو لازمه ده چې ددې لپاره به سربښندنه او قرباني كيږي، لکه اللهسبحانه وتعالی رسـول اللهصلی الله علیه وسلم ته فرمايي: (فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ لاَ تُكَلَّفُ إِلاَّ نَفْسَكَ وَحَرِّضِ ٱلْمُؤْمِنِينَ...) [ سورة النساء ٨٤ ]

**ترجمه**: ای پيغمبره! د الله تعالی په لار کې جهاد کوه ته يوازې په خپل ځان مکلف يې او مؤمنان په تيزی سره د جهاد په لور دعوت کوه.

ددې تمكين (واکمنی) هـدف دا دی چې پـه ټولنـه کې يو اسـلامي نظام(دولت، حكومت) رامنځته شـي چې دا دولت به د يوه خليفه لخوا سـمباليږي او د اسـلامي سـياسـت هم دا غوښـتنه ده چې ټول ګروپونـه، تنظيمونـه، او دمجـاهـدينو لويې او وړې ډلګی بـه د يوه اسلامي بيرغ لاندې راټوليږي.

دا دی اوس اللهسبحانه وتعالی دخپلې هغه ژمنې پر بنسـټ چې د خپل پيغمبرصلی الله علیه وسلم په ژبه يې له امت سره کړې ده چې په هرو سلو کالو کې به يو مجدد پيدا کوي، هغه وخت راوست چې مؤمنان يې تل په ارمان ناسـت وو، اللهعزوجل پر اسـلامي امت د خپل خاص رحمت

دروازه راپرانســـتله، چې ددوی د قربانیو نتیجه يې په لاس ورکړه او **اسلامي خلافت** يې ورنصيب کړ.

الحمدلله ثم الحمدلله، (والله) مونږ دا خبره په يقين او بصيرت سره کوو چې دا د الله سبحانه وتعالی خاص رحمت دی.

رب العالمين بيا مؤمنانو ته اســـلامي خلافت ورکړ؛ خو دا احســـاس هغه څوک کولای شـــي چې د مســـلمانانو په حال څه نا څه زوريدلی وي.

په حقيقت کې په ټوله نړۍ کې ټولې جهادي ډلې د همدې نعمت د ترلاســـه کولو لپاره قربانۍ ورکړې او لاهم د قربانۍ په حال کې دي؛ خو د نړۍ دټولو مجاهدينو په نسبت الله سبحانه وتعالی د عراق او شـام مجاهدينو ته زيات تمکين ورکړ او زمنيه ورتـه برابره شـــوه چې د خلافت اعلان وکړي او ټول اسلامي امت د يوه بيرغ لاندې راټول کړي او د ټولې نړۍ د مســـلمانانو لپاره يو پناه ځای پيداشـــي؛ نو په هغه ســـيمه کې موجود اهل الحل والعقد راجمع شـــول او د شـــيخ أبوبکر البغدادي القريشي حفظه الله يې د ټولې نړۍ د خليفه په توګه وټاکه، دا په داســـې حال کې وه چې تردې مخکې يې د شـــهيد شـــيخ ابوعمر البغدادي رحمه الله وتقبل شـهادته تر مشـرۍ لاندې په عراق او شـام کې په

بشـــپړه توګه تمکين ترلاســـه کړی وو، او هلته يې د ولس ټول حقوق په پوره توګه اداء کړي وو.

## د اسلامي خلافت په وړاندې د خلکو دريځ:

کله چې خلافت اعلان شـو او ټولې نړۍ ته يې غږ ورسـيده؛ نو د ټولې نړۍ خلک په درې ډلو وويشل شول:

۱- لومړۍ ډلـه يې د کافرو، مشـــرکانو، روافضـــو شـــيعه ګانو، منافقينو، مرتدينو، او ســـيکولرســـتانو وه چې خپل ټول وســـه يې د اسلامي خلافت د له منځه وړلو په لاره کې په کار واچوله.

۲- دويمه ډله هغه عام مسلمانان او مجاهدين دي چې خپله شپه او ورځ يې د همدې هـدف د لاس تـه راوړلو لپـاره پرځان يوه کړې او خپل سـرونه يې په لاس کې نيولي وو؛ خو ځينو شبهاتو او د کفارو او منافقانو د کفري تبليغاتو او د غربي کفري ميډيا ناوړو شـــائعاتو او خپرونو په شـــک کې اچولي دي او لاتر اوســـه حيران پاتې دي چې څه وکړي، لايې بيعت نـه دی کړی؛ خو کـه دکفري ميـډيا د نـاســـمو تبليغاتو له تاثير نه خلاص شــول الله عزوجل پرې رحم وکړ او ســينه يې ورلـه خلاصـــه کړه؛ نو بيعت به کوي، ځکه دوی مخلص دي؛ خو تيروتي دي.

۳- دريمه ډله هغه مسلمانان مجاهدين دي چې الله[سبحانه وتعالى] يې سينه خلاصه کړه، خپل شرعي مسئوليت يې وپيژانده، د موجوده حال حکم يې معلوم کړ، د وخت ضرورت يې صحيح احساس کړ او ويې کتل چې کفري ملتونه تر هرڅه زيات په دې خبره غصه کيږي، چې ټول مسلمانان د يو خليفه په بيعت سره راجمع شي، نو دې مسلمانانو د **شيخ أبوبکر البغدادي** [حفظه الله ورعاه] په اړه خپل معلومات بشپړ کړل، ويې ليدل چې په نوموړي کې د خلافت ټول شرائط موجود دي، د **دولة الخلافة الاسلامية** په اړه يې پوره څيړنه وکړه او معلومه يې کړه چې دا پر اسلامي امت د الهي نصرت يوه دروازه ده چې رب العالمين راخلاصه کړه او همدا د مهدي لښکر دی، چې په راتلونکي کې به ان شاء الله ددوی په ملتيا د مهدی[عليه السلام] لښکر تکميليږي او د بيت المقدس د آزادۍ په لور په خپل ګامونه اخلي؛ نو له **خليفة المسلمين الشيخ أبوبکر القريشي البغدادي** [حفظه الله] سره يې په پوره بصيرت او ويښتيا بيعت وکړ او هغه يې د اسلامي خليفه په توګه د خپل سر سيوری او داسلامي امت د آزادۍ، پرمختګ او خپل اصلي حالت ته د ورګرځيدو د لارې يو بل مشعل وګاڼه او دوی په خپل دې فکر کې د الله[سبحانه وتعالى] په فضل سره مصيب او په حقه دي، لکه د دې کتاب د مطالعې په ترڅ کې به درته ان شاء الله هرڅه په ډاګه شي.

موږ دغه یو وړوکی کتاب دخپلو مؤمنو، مسـلمانانو او خصـوصـا مجاهدینو ورونو ته د بصـیرت او حق پیژندلو په خاطر ولیکلو، ددې لپاره چې د هغو ورونو زړونه لا زیات مطمئن شـي او قدمونه یې پیاوړي شـي، چې د دولة الخلافة الاسـلامية سـره یې بیعت کړی او کوم ورونه چې د غربي کفري تبلیغاتو تر اغیز لاندې راغلي، له زړونو نه یې شکونه او شبهات لرې شي او حق پکې ځای ونیسي او دکافرانو، شیعه ګانو، منافقانو او مرتدینو په سترګو کې ازغي شي، په یو صف او د یو امیر تر قیادت لاندې د خپل ګډ دښمن په مقابل کې ودریږي، دا کار مو خاص د الله عزوجل د رضـا او مسـلمانانو ورونو ته د خیر رسـولو په خاطر تر سـره کړی الله سبحانه وتعالی دې په خپل درکې قبول وګرځوي.

آمین

أبوعمیر عبدالحسیب حفظه الله

أبوعمر الخراساني حفظه الله

۷ جمادي الثاني ۱۴۳۶

# د خلافت پیژندنه

## خلافت څه ته وايي؟

اللهسبحانه و تعالی د ټول انسانیت د لارښووني لپاره انبیاءعلیهم السلام رالیږلي، هر نبي به په خپل وخت د خپل امت د ټولو دیني او دنیوي کارونو سرپرستي کوله، رسول اللهصلی الله علیه وسلم آخرنی پیغمبر دی، د رسول اللهصلی الله علیه وسلم له وفات نه وروسته د دیني او دنیوي کارونو د سمبالښت لپاره د خلافتونو سلسله پیل شوه، اللهسبحانه و تعالی دا امت مکلف کړی چې د ځان لپاره به خلیفه ټاکي او خلیفه یې د امت د ټولو چارو په سمبالولو مکلف کړی دی.

نو خلافت هغه منصب دی چې د امت ټول دیني کارونه لکه جهاد، صلح، عهود، د اسلامي خاورې حفاظت، د احکامو تنفیذ، د حدودو قايمول... او دنیوي کارونه لکه د مسلمانانو له منځ نه د اختلافاتو او جګړو ختمول، صدقات راجمع کول او مستحقینو ته د هغې سپارل او داسې نور... سمبالوي، لکه امام ماوردي رحمه الله وايي:

(الامامة موضوعة کخلافة النبوة في خراسة الدین والدنیا) [ احکام السلطانیة ص ۱ ]

**ترجمه**: امامت (خلافت) د نبوت د نیابت په توګه د دین او دنیا د حفاظت لپاره ټاکل شوی.

شیخ رشید رضا رحمه الله یې داسې تعریفوي: (الخلافة والامامة العظمی و امارة المؤمنين ثلاث كلمات معناها واحدة هي رياسة الحكومة الاسلامية الجامعة لمصالح الدين والدنيا) [ الخلافة ص ۱۷ ]

**ترجمه**: خلافت، امامت العظمی او امارت المؤمنين درې کلمې دي چې یوه معنی لري، او هغه دا چې دا د اسلامي حکومت داسې مشرى ته ویل کیږي چې د دین او دنیا مصلحتونو لره راجمع کوونکی وي.

علامه التفتازني رحمه الله اصولي عالم یې داسې تعریف کوي: (الامامة هی رياسة عامة في امر الدين والدنيا خلافة عن النبي صلى الله عليه وسلم) [ متن مقاصد الطالبين فی علم اصول عقايد الدين ]

**ترجمه**: امامت د دین او دنیا په کارونو کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د نیابت په توګه یوه عامه مشري ده.

له پورته تعریفونو نه واضحه شوه چې خلافت د امت د ټولو دیني او دنیوي مصالحو پخاطر مشروع دی او تردې پرته هیڅ مصالح نه شي پوره کیدای.

# د خليفه پيژندنه

## خليفه څوک دی؟

که مو مخکينی موضـــوع په پوره دقت ســـره کتلې وي؛ نو خلافت د پيژندني ترځنګ به مو خليفه هم پيژندلی وي؛ خو د لا روښـانتيا لپاره پرې يو څه رڼا اچوو.

علماء د امت لپاره د امام ضـــرورت داســـې بيانوي: (لولم يكن للامة امام لانقطعت الســـبل للوارد والصـــادر لو خلاعصر من امام لتعطلت فيه الاحكام وضـــاعت الايتام ولم يحج البيت الحرام لو لالائمة والقضـــاة، والطلاطين، والولاة لما نكحت الايامى ولا كفلت اليتامى لولا الســـلطان لكانت الناس فوضى ولاكل بعضهم بعضا) [تهذيب الرياسته وترتيب السياسته ص۸]

**ترجمه**: که چیرې د امت لپاره امام نه وي؛ نو د خلکو پرمخ به د تلو راتلو لارې وتړل شي، که يوه زمانه د امام نه خالي شي؛ نو په احکامو به عمل پريښودل شي او د يتيمانو حقونه به برباد شي او د بيت الله شـــريف حج به هم اداء نه شـــي، که امامان، قاضـــيان، واکمنان او واليان نه وای؛ نو له ښځو سره به شرعي نکاح نه کيدای او نه به د يتيمانو پالنه کيدای او که خليفه نه وای؛ نو ټول خلک به ايله او خواره واره وای او خلکو به يوبل خوړلي وای.

د علماؤ د پورتنی وینا مطابق دومره وخت د خلیفه د نشتوالي نتیجه وه، چې نن د مســـلمانانو پرمخ ټولې د تلو راتلو لارې بندې دي، هری خوا تـه کفـارو بـارډرکشــي کړې او د کفـارو د ټکټونو، جوازونو او پاســپورټونو پرته څوک د بیت الله شــریف حج نه شــي کولای، د اسلام پر احکامو عمل پرېښودل شوی، د کونډو او یتیمانو د حقوقو پاملرنه نشته، دغربي ډیموکراسی د آزادی له بربنډو شعارونو څخه په استفادې سره ټول خلک پرخپل سر دي او ټول د غربي امریکایي تروریزم په نتیجه کې د یوبل وینو څښلو او غوښو ته تیار ناست دي، اللهعزوجل دې زموږ په حال رحم وکړي.

کعب احباررحمه الله وايي: (مثل الاسلام و السلطان مثل العمود والفسطاط الاســلام فســطاط والســلطان عمود والناس او تادو لا یصــلح بعضــهم الا ببعض) [ المصدر السابق بتصرف یسیر ]

**ترجمه**: د اسـلام او امام مثال د سـتنو او خیمې په شـان دی، خیمه اســـلام دی او ســـتنه یې امام دی او هغه میخونه چې د خیمې د ټینګولو په خاطر وي هغه خلک دي چې په دې کې به یو له بل نه پرته نه اصلاح کیږي.

# د خلیفه شرطونه

لکه څنګه چې خلافت یو ستر مسئولیت دی، د رسول اللهصلی الله علیه و سلم صحیح نمایندګي(استازیتوب)، ټول امت ته  حقوق ورسپارل او کامیاب سیاست پرمخ وړل دي؛ نو ځکه زموږ شریعت د خلیفه لپاره شرطونه ایښي دي، که په دغه شرطونو برابر وو، خلیفه کیدای شي؛ که نه نو بیا خلیفه نه بلل کیږي.

په اسلامي شریعت کې داسې قانون نشته، لکه څرنګه چې په اوسنیو غربي، طاغوتي، کفري حکومتونو او د ډیموکراسی په بندګانو کې دی، چې دا ستر او عظیم مسئولیت هغه چاته سپاري، چې په خپل حرامیتوب، د ډیرو بې ګناه خلکو د وینو تویولو، زیاتو دروغو او پیسو لګولو د ډیرو خلکو رایه خپله کړي، هغه که په ټول ملت کی خبیث او ناولي انسانان وي او یا هم انتخابوونکي یې ټول کافر او ګمراه وي.

موږ دلته هغه شرطونه ذکر کوو چې اسلامي شریعت د خلیفه لپاره لازم کړي چې له دې نه ځیني په خلیفه پورې خاص دي او ځینې د هر امیر لپاره ضروري دي.

**اول شرط - ا سلام:** په دې مسئله کې د اسلامي امت د ټولو امامانو، محدثینو او فقهاوو اجماع ده، چې کافر د مسلمانانو

خليفه(واکمن،مشر) نشي جوړیدای. ځکه الله سبحانه و تعالی فرمايي:

(وَلَن يَجْعَلَ ٱللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ سَبِيلاً) [ سورة النساء ١٤١ ]

**ترجمه:** هیڅکله الله تعالی کافرانو ته په مسلمانانو باندې د غلبې لاره نه ده ورکړې.

او په بل ځای کې الله عزوجل فرمايي: (يَا أَيُّهَا ٱلَّذِينَ آمَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلأَمْرِ مِنْكُمْ) [ سورة النساء ٥٩ ]

**ترجمه:** ای مؤمنانو! د الله تعالی او د رسول تابعداري وکړئ او دخپلو امیرانو تابعداري وکړئ.

په پورتني آیت کې د (أُوْلِي ٱلأَمْرِ) د (مِنْكُمْ) قید پر دې دلیل دی چې د مسلمانانو امیر به د مسلمانانو له دلې څخه وي، نه له کفارو څخه، او بل دا چې هرکله د امیر د امر اطاعت لازم شو او د کافر له اطاعت نه منع راغلې ده؛ نو معلومه شوه چې کافر به د مسلمانانو امیر نه وي.

**دوهم شرط - بلوغ:** په دې هم د امت اجماع ده، چې صغیر(ماشوم) خلیفه نشي جوړیدای، ځکه ماشوم د امت چارې نه شي سمبالولای.

علامه ابن حزم رحمه الله وايي: (وجميع ا هل القبلة ليس منهم ا حد يجيز امامة امراة ولا امامة صبي الا الرفضة فانها تجيز امامة الصغير) [ الفصل فى الملل والنحل جلد ٤ ص ١١٠ ]

**ترجمه**: د ټولو اهل قبله وو(مسلمانانو) له جملې نه يوکس هم د ښځې او ماشوم خلافت روا نه ګڼي پرته له روافضو(شيعه ګانو) نه چې دوی د ماشوم خلافت روا ګڼي.

**دريم شرط - نارينه والی:** ښځه نشي کولای چې دا درونند پيټی په اوږو واخلي، له همدې امله د سورة النساء په (۵۹) آيت کې د (وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡ) کلمه دې ته اشاره ده،ښځه به د مسلمانانو مشري نه کوي، ځکه (أُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ) د مذکر کلمه راغلې ده، بل په سورة النمل ۲۳ آيت په کې د هدهد قول نقلوي چې (إِنِّي وَجَدتُّ امرأةً تَملِكُهُم) ترجمه: ما ښځه وليده چې په دوی مشري کوي، په دې صريح دلالت کوي چې ښځه د مسلمانانو مشري نشي کولای او پيغمبر صلى الله عليه وسلم هم فرمايلي دي: (لَن يُفلِحَ قَومٌ وَلَّوا أَمرَهُم إِمرَأَةً) [ صحيح البخارى ٤٤٢٥ ]

**ترجمه**: هغه قوم هيڅکله نه کاميابيږي چې خپل واکي ښځې ته وروسپاري.

او دا ځکه چې د ښځې په دين او عقل کې نقصان دی او داسې عوارض پرې راځي، چې ددې مسئوليت مانع ګرځي، بل دا چې خليفه داسې ځايونو ته وړاندې کيږي چې که ښځه هغه ځای ته ورووړاندې شي؛ نو په بې شميره عظيمو ګناهونو به اخته شي لکه امامت د لمونځ نارينه وو ته.

**ثلورم شرط - حر یت(د غلامۍ نه آزادي):** غلام ځکه خلیفه نشي جوړیدای چې دا په خپل ځان کې پوره واکدار نه وي، په خپل واک تصرف نه شي کولای، ترڅو مالک ورته اجازه ونه کړي؛ نو په بل چا به څنګه واکمن شي.

ابن حجررحمه الله د ابن بطالرحمه الله نه اجماع نقل کړې چې غلام خلیفه نشي جوړیدای: (واجمعت الامة علی ان الامامة لاتکون فی العبد) [ فتح الباري جلد ۱۳ ص ۱۲۲ ] **ترجمه:** د ټول امت اجماع ده چې خلافت دغلام لپاره نشي ثابتیدای.

**پنځم شرط - عقل:** په دې هم د ټول امت اتفاق دی چې لیونی او کم عقل خلیفه نشي جوړیدای، ځکه دی په خپلو مصالحو نه پوهیږي، دټول امت مصالح به څنګه پرځای کړي.

**شپږم شرط - علم:** داهم اتفاقي خبره ده چې جاهل امام نشي جوړیدای، بیا په دې کې اختلاف دی چې اجتهاد درجې ته به رسیدلی وي او که نه؟ د محققینو علماؤ په نزد راجحه دا ده چې باید په ډیرو احکامو او نوازلو مسئلو کې د اجتهاد ورتیا ولري.

**اووم شرط - شجاعت:** داهم یو مهم شرط دی ځکه د کفارو دا نده خوښه چې د یو اسلامي خلافت لاندې دې ټول مسلمانان په امن کې ژوند تیر کړي، په هره زمانه کې به خپلو ټولو وسایلو هڅه کوي، چې

اسلامي خلافت وړنګوي؛ نو خلیفه به میړنی او زړور شخص وي، د خپلو مقاصدو د حاصلولو لپاره به له هیڅ قسم خطر څخه نه ویریږي او دهرې ستونزې په وړاندې به لکه د غره په څیر مقاومت کولای شي.

**اتم شرط – عدالت:** د عدالت معنی داده چې خلیفه به د ټولو شرعي احکامو پابند وي او ددی ترڅنګ به د ټولو هغو خویونو څښتن وي چې خلک متقیان پرې یادیږي.

امام قرطبي رحمه الله په دې شرط اجماع رانقل کړی: (ولا خلاف بین الامة فی انه لا یجوز ان تعقد الخلافة لفاسق)[ الجامع الاحکام القرآن جلد ۱ ص ۲۷۰ ]

ترجمه: په دې خبره کې د امت اختلاف نشته چې فاسق سړي ته به خلافت نه سپارل کیږي.

**نهم شرط – بدني کمال:** ددې شرط مقصد دا دی چې د خلیفه حواس به هم سالم وي او داسې عیب به نلري چې ددې مسئولیت پورته کول ورته ګران وي، طالوت ته چې خپل پیغمبر علیه السلام د جنګ مشري سپارله هم له دې وجې نه چې نورو نه په علم او بدني طاقت کې زیات وو، لکه چې الله عزوجل یې داسې تعبیر کړی: (إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي ٱلْعِلْمِ وَٱلْجِسْمِ) [ سورة البقرة ۲۴۷ ] ترجمه: یقینا

اللهسبحانه و تعالی، طالوت يې غوره کړی دی په تاسو باندې او ده ته يې په تاسو باندې په علم او بدني طاقت کې زياتوالی ورکړی.

**لسم شرط - په مشرۍ باندې حرص نه کول:** په دې مسئوليت باندې حرص کوونکي ته ځکه خلافت سپارل روا نه دي، ځکه هغه څوک چې اقتدار نشه په سرکې لري د امت چارې نشي سمبالولای، له همدې امله رسول اللهصلی الله عليه و سلم فرمايلي دي: (إِنَّا لَا نُوَلِّى هَذَا مَن سَأَلَهُ، وَلَا مَن حَرَصَ عَلَيهِ) [ صحيح البخاري ٧١٤٩ ]

ترجمه: ښه باور وکړئ چې موږ دا کار(مشري) هغه چاته نه سپارو چې غواړي يې او يا ورته حرص ښيي.

له دې امله د موجوده ډيموکراسۍ کفري قانون کې د خلکو کانديد کيدل د اسلام له اصولو څخه خلاف دي او له همدې امله ډيموکراسۍ په قالب کې راغلي مشران نه د دين لپاره دوا کيدای شي او نه د دنيا لپاره او نه ځان ته ګټه رسولای شي، هسې هندو سترې او الله ناراضه مسئله ده.

**يوولسم شرط - قريشيت:** ددې شرط تفصيل وروسته راځي دلته يوازې يو حديث د استدلال په خاطر رانقلوو، نبیعليه السلام فرمايي: (إِنَّ هَذَا الأَمرَ فِي قُرَيشٍ، لَا يُعَادِيهِم أَحَدٌ إِلَّا كَبَّهُ اللَّهُ فِي النَّارِ عَلَى وَجهِهِ، مَا أَقَامُوا الدِّينَ) [ صحيح البخاري ٧١٣٩ ]

ترجمه: يقينا دا د خلافت کار به قريش سـمبالوي، په دې کار کې به ورسـره جګړه نه کوئ، که هرچا ورسـره په دې کار کې جګړه وکړه، الله تعالی بـه يې پړمخې پـه اور کې واچوي، خو تر څو چې دوی خپلـه مشرئ کې دين قايموي.

# د خليفه ټاکلو طريقې

## خليفه به څنګه ټاکل کيږي؟

اسلامي شريعت کې د خليفه د مقررولو درې طريقې دي:

**١- د مخکني خليفه وصيت:** چې مخکنی خليفه د خپل مرګ نه مخکې وصيت وکړي، چې زما دمرګ نه وروسته دا(فلاني) کس خليفه دی، دا اتفاقي خبره ده لکه څرنګه چې أبوبکر صـــديق رضـی الله عنه د خپل ځان نه وروسته عمر رضی الله عنه ټاکلی وو.

**٢- د اهل الحل والعقد لخوا ټاکل:** اهل الحل والعقد لغوي معنی د خلاصولو او تړلو والا ده او په شرعي اصطلاح کې د مؤمنانو، علماؤ، صـــالحينو او مشـــرانو هغه ټولګې ته ويل کيږي چې د يو امام د ټاکلو لپاره دهغوی راجمع کول آســـانه وي، دا تعريف امام نووي رحمه الله کړی.

دا په هغه صورت کې ده چې مخکې انقطاع د امامت راغلې وي، امام شـتون نه لري، يا امام وي؛ خو مرګ پرمهال يې وصيت نه وي کړی؛ نو بيا د اهل حل والعقد شـورا يو مسـتحق کس مقرروي، ددې اهل الحل والعقد لپاره کوم معين تعداد شـــريعت ندی ښـــودلی، خو د ځومره کســـانو راجمع کيدل چې ممکن او آســـان وي همغه به دا کار کوي.

قاضـی أبوبکر او ابوالحســن رحمهم الله: (أَنَّ الإِمَامَةَ تَثبُتُ بِمُبَايَعَةِ رَجُلٍ وَاحِدٍ مَن أَهلِ العَقدِ. وَالإِجمَاعَ لَيسَ شَرطًا فِي عَقدِ الإِمَامَةِ، ثُمَّ لَم يَثبُت تَوقِيفٌ فِ عَدَدٍ مَخصُوصٍ) [ غياث الامم فی التياث الظلم (ص ٧٠) ]

ترجمه: خلافت د اهل الحل والعقد څخه د يوه کس په بيعت ســره هم ثابتيږي. او اجماع د امامت دعقد لپاره شــرط نه ده او نه د اهل الحل والعقد په خاص شمير باندې توقيف شوی دی.

**٣- کله چې يو امام وفات شي:** او وصيت يې نه وي کړی او اهل الحل والعقد هم د امام په ټاکلو مؤفق نه شــي، د امت د مصــالحو په خاطر يو کس په خپله ځان معرفي کړي او خلک پرې اعتماد وکړي او بيعت ورسره وکړي؛ نو دا هم خليفه جوړيدای شي.

يا بل صــورت يې داسـې جوړيږي چې يو حکومت موجود وي؛ خو په حاکمه طبقه کې يې د خلافت د عقد د فسـخ کيدو شــرائط موجود شــي او فســق او فجور پکې زيات شــي، يوه د ســلطې واله مؤمنه او مسلمانه ډله راپورته شي، ددغه حکومت واکمني له منځه يوسي او په دوی کې يوکس ځان د خليفه په توګه معرفي کړي او خلکو نه د خپل ځان لپاره بيعت وغواړي او موجوده خلک ورسره بيعت وکړي؛ نو په نورو مسلمانانو بياهم لازمه ده چې ټول ورسره بيعت وکړي.

دې ته قهري خلافت ويل کيږي، د اهل السـنت والجماعت په اند ددې خلافت انعقاد صحيح دی لکه مخکې ياده شوه او په السياسة الشرعية – جامعة المدينة (ص ٥٣٨) کې هم ليکي:

**المذهب الاول:** يرى الخوارج والمعتزلم ان الامامة لا تنعقد الا لمن جاء عن طريق البيعة الخالية عن اى جبر او قهر.

**المذهب الثاني:** وهو مذهب عامة اهل السـنة والجماعة: ان الامام يصح ان تنعقد لمن غب الناس وقعد بالقوة فى موضـع الحكم، وروي عن الامام احمد بن حنبل قوله: "من غلب عليهم بالسـيف حتى صـار خليفة وسـمى اميرالمؤمنين فلا يحل لاحد يؤمن بالله واليوم الاخر ان يبيت ولا يراه اماما بارا كان او فاجرا".

لمړی مذهب د معتزله وو او خوارجو دی، دوی وايي: چې امامت له داسې بيعت څخه پرته صحيح نه دی چې له زور نه خالي وي.

او دويم مذهب د عامو اهل سـنتو دی، دوی وايي: که څوک په زور سره د خلافت واکې په لاس واخلي؛ نو خلافت يې صحيح دی.

له امام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل دي چې ويل به يې: څوک چې د توري په زور پر مسلمانانو واکمن شو تردې چې خليفه وګرځيده او د اميرالمؤمنين نوم ورکړ شـو؛ نو که څوک پر الله عزوجل او د آخرت په

ورځ ایمان لري، دده لپاره روا نه ده چې یوه شپه دې په داسې حال کې تیره کړي چې امام ونه ویني که دا امام نیک وي او که بد.

# د خلافت مقاصد

## اول - پر اسلامي خلافت د امت حقونه

### ۱- د دین حفاظت:

خلافت یوه بنده قلعه ده، چې دین د بدلولو، تحریفولو، بدعاتو څخه بچ ساتي.

اسلامي دولت مکلف دی چې د الله سبحانه و تعالی د دین ساتنه وکړي، چې په دې لړکې لاندې مسئولیتونه لري:

- د مسلمانانو له منځ نه ټول غیر اسلامي، غیر شرعي رواجونه او رسمونه لرې کول.
- له کفارو نه رانقل شوي دودونه له منځه وړل.
- خلکو ته ددین دلایل روښانه کول.
- د دیني علومو خپرونه.
- د شرعي علومو او دیني علماؤ احترام او درناوی کول، ددوی حیثیت ساتل او حقوق یې خوندي کول.
- له عامو پوهانو، دیني علماؤ او باتجربه مشرانو نه مشورې اخستل، ځکه الله عزوجل خپل نبی صلی الله علیه وسلم ته فرمایلي دي: (وَشَاوِرهُم فِي الأَمر) ترجمه: له خپلو ملګرو سره په ټولو

چارو کې مشوره کوه. رسول اللهصلی الله علیه وسلم ته د الله تعالی له خوا نه وحې کیدله په اصل کې د هغه د خلکو مشورې ته هیڅ اړتیا نه وه؛ خو اللهسبحانه و تعالی ورته د همدې لپاره امر وکړ چې د امت لپاره د شورا یو اصل قایم شي.

**۲- د احکامو نافذول او د اسلامي شعائرو ساتنه او راژوندی کول:**

د اللهسبحانه و تعالی هرحکم په هروخت کې په هرچا باندې نافذول، چې د خلافت نه بغیر نه کیږي، او دارالخلافة ساحاتو نه بیرون نن چې ځومره د دعوت په نوم کوششونه کیږي ټول بې روحه ثابتیږي ځکه چې هلته خلافت نشته.

اسلامي دولت مکلف دی چې د اسلامي شعائرو او دیني آثارو ساتنه وکړي او که کوم شعائر له منځه تللي وي باید راژوندي یې کړي؛ چې په دې لړ کې لاندې مسئولیتونه لري:

- د لمانځه حکم ساتل.
- د لمانځه د حکم د ژوندي ساتلو لپاره د امامانو روزنه، د هغوی حقوق خوندي کول، امن ورته قائمول او ترشا یې ودریدل ترڅو په آزاده توګه د حق بیان وکړي او دهیچا تر تاثیر لاندې رانشي، په دې سلسله کې د امامانو معاشات او رواتب په نظر کې نیول دي.

- د مسجدونو آبادول او ټول لوازم يې سر ته رسول.
- د مؤذن پالنه.
- په مسـجدونو کې د درسـونو حلقې قـائمول او د مشـرانو او کشرانو لپاره د اسلامي روزنې موقع ايجادول.
- د حج آسانتياوې برابرول.
- د روژې او اخترونو اعلان او په روژه کې د عامو مسلمانانو لپاره د صدقاتو دروازه پرانيستل.
- او د پورته ذکر شـويو ټولو مقاصـدو ترلاسـه کولو لپاره د امر بالمعروف نهي عن المنکر او دعوت او ارشاد جماعات قائمول.

### ۳- د قاضيانو ټاکل:

اسـلامي دولت به قاضـيان ټاکي، محاکم به قايموي او د الله سبحانه و تعالی پر شـرع به حکم کوي، ځکه ټول شـرعي احکام د الله تعالی پولې دي، الله تعالی لـه دې سـرحدونو تيريدلو او د هغې لـه ماتولو خپل بندګان منع کړي دي؛ نو د ځينو احکامو په مخالفت باندې شـريعت دنيوي سزاګانې مقررې کړي او دا پرته له امام نه ممکن نه دي، ابن قدامه رحمه الله د علماؤ اجماع رانقل کړې چې: حدود قائمول د امام نه بغير بل څوک نشي کولای، ځکه له خلافت پرته د حدودو قائمولو پورې ډېر فسادونه تړلي دي.

لـه دې املـه دا د خلیفـه مســئولیـت دی او پر غـاړه یې لانـدې مسئولیتونه پراته دي:

- د عادلو قاضیانو ټاکنه.
- د فیصلو تعقیبول.
- د رشـــوتونو له منځه وړل چې په دې لړکې به پر قاضـــیانو او چارواکو له تحفو او د خلکو دعوتونو قبلول هم منع وي.
- په فیصـــلو کې به هغوی تعقیبوي ترڅو ولس کې عـدل ځـای ونیســي، قومي مشـــران او عـام علمـاء کرام د جرګو مرکو لـه جنجاله خلاص شي او خپل عبادت ته وزګار شي.

### ۳- شرعي حدود قایمول:

پورتنی مقصـــد د همدې لپاره دی چې حدود نـافـذ شـــي، اســـلامي خلافت به د حدودو د نفاذ په لړکې د شریـف او رذیل ترمنځ فرق نه کوي، تردې که په کور کې یې یو جرم وشـي او د حد قابل وي حد به پرې جاري کوي، لکه نبیعلیه السلام فرمایي: (وَاللَّه لَو أَن فَاطِمَة بِنت مُحَمَّد سرقت لَقطع مُحَمَّد يَدَهَا)

ترجمه: پر الله تعالی قسم! که زما لور فاطمه غلا وکړي زه به یې لاس غوڅ کړم.

### ٥- له مالدارو نه زكات اخستل او اهل الذمة وو نه جزيه ټولول:

اسلامي دولت مكلف دی چې له مالدارو نه زكات واخلي او غريبو ته يې ورسوي او طريقه يې داده چې ولس به د خپل مال زكات د اسلامي دولت محكمې ته رسوي او دا به د اللهسبحانه و تعالی عبادت بولي، محكمه به يې بيت المال ته سپاري او د دولت مؤظف غړي به د بې وزلو خلكو لست جمع كوي، چې د زكات د توزيع پر مهال هر بې وزله او غريب ته برخه ورسيږي، په همدې اصل عملي كولو سره كه دوه كاله خلک زكات واخلي په دريم كاله به زكات اخسيتونكي نه وي، د خلكو ټولې اړتياوې به پوره شي او د دولت نور مصارف له اهل ذمه وو راټولې شوې جزيې، مال فيء، غنيمت او نورو اخراجاتو له لارې پوره كيږي، چې په دې کې به اسلامي دولت اهل خلک ټاكي او هغوی به يې په شرعي طريقه لګوي...

### ٦- د اسلام د سرحدونو حفاظت:

نن د ټولو كفري هيوادونو سرحدونه د مسلمانانو پرمخ تړلي دي او د مسلمانانو ټولې خاورې د كفارو پرمخ خلاصې او آزادې دي، كه څوک بمبار كول غواړي، كه پوځيان راداخلوي، كه نورې شتمنی ترې وړي؛ څوک نشته چې منع يې كړي ځكه چې امام نلري.

اوس چې الحمدلله خلافت قائم شو ، نو خپل تمكين ساحو كې يې سرحدونه ختم كړي، يو مسلمان بې له كوم پاسپورټ يا ويزې د

خلافت هر سر ته سفر کولی شي هلته اقامت کولی شي او تګ راتګ يې بلا مانع آزاد دی، او د دنيا هيڅ يو کافر پکې آزاد ندی مګر هغه اهل الذمه چې اسلامي خلافت ته جزيه ورکوي او د اسلام د قوانينو مطابق ژوند تيروي او باقي نور ټول کفارو ســره د جنګ او قتال اعلان دی، نو ان شاء الله چې الله تعالی خلافت ته هر څومره ساحه ورکړي تردې چې ټوله ځمکه الله رب العالمين د اســلامي خلافت تمکين لاندې راولي نو مسلمانان به پکې آزاد وي او يهود و نصارى نه به جزيه اخستل کيږي.

نو خليفه د ټولې اســلامي خاورې او ســيمه ييز واليان، اميران او مشران د خپلې سيمې په ساتنه مکلف دي چې په دې لړ کې به لاندې کارونه سرته رسوي:

- له يهودو، نصاراوو، مشرکانو، مرتدينو، باغيان او داسې نورو سره د جهاد اعلان.
- پوځي روزنه.
- په فکري لحاظ د رعيت روزنه او دوی ته ليبرالزم، ديموکراسي، جمهوريــت، ســوســيــاليزم، کميونيزم، علمـانيـت(بې ديني)، نيشنلستي، امپرياليزم او داسې نور غربي کفري نظامونه معرفي کول او په دې يې پوهول چې دا ټول کفري(طاغوتي) نظامونه

دي او د مسلمانانو د کمزورۍ او له يو بل نه د بيلولو لپاره کفارو رامنځته کړي دي.

- مسلمانان په دې خبره پوهول چې ټوله ځمکه په اصل کې د الله تعالی او بيا د مسلمانانو ده، بايد د ځمکې هره برخه او هر کونج د اسلامي دولت تر سيوري لاندې راشي؛ خو اوس چې کومې خاورې د طاغوتي، کفرى، ديموکرات، جمهوري، کميونيستي يا نورو نظامونو تر سيوري لاندې دي هغه دارالحرب او کومې چې د اسلامي دولت تر سيوري لاندې دي، دارالاسلام بلل کيږي.
- د دارالاسلام ساتنه او دارالحرب له طاغوتي نظامونو نه د اسلامي نظام د قيام لپاره آزادول د مسلمانانو پر ذمه دي، په کومو سيمو کې چې طاغوتي نظامونه قائم دي عام مسلمانان يې بايد له مجاهدينو سره مرسته وکړي، توڅو د کفري نظامونو له غلامۍ نه آزاد او د خپل اسلامي شرعي نظام تر سيوري لاندې په اسلامي فضا کې د آزاد او خپلواک ژوند خاوندان شي.

### ۷- جهاد:

جهاد یوازې د خپلې خاورې، ناموس او وینې نه د دفاع په خاطر ندی فرض شوی، بلکې ټول کفر ته دا اعلان دی چې یا اسلام راوړي یابه جزیه ورکوي او داسلامي حکومت په سیوري کې به سرټیټی ژوند تیروي، یا به مونږ ورسره جنګیږو؛ نو دا د امام کار دی چې لښکرې به تیاروي او د کفارو سره به جهاد کوي، اګرکه د امام د وجود پورې جهاد خاص نه دی، بلکې بغیر د امام نه هم دا واجب حکم نه ساقطیږي.

### ۸- اسلامي علومو ته وده ورکول او د ښوونې او روزنې په برخه کې آسانتیاوې رامنځته کول:

په دې سلسله کې اسلامي دولت د ښه اسلامي نصاب په جوړولو مکلف دی، د استاذانو روزنه او هغوی سره مرسته یې ذمه واري ده. چې په دې لړ کې اسلامي دولت لاندې مکلفیتونه لري:

- د مدرسو او ښوونځیو قائمول.
- د ښوونې او روزنې د تاکل شوي نصاب په رڼا کې خلکو ته د زده کړو زمینه برابرول.
- د لویانو او کشرانو لپاره د دیني اړینو علومو لاره هوارول.

- ټولو عصـــري علوموته چې لـه اســـلام ســـره ټکر نـه لري وده ورکول.
- تعليمي نصاب له غربي افكارو نه پاكول.
- تعليمي نصاب د شيعه ګانو له ميكروب نه پاكول.
- تعليمي نصـــاب كې لـه كفـارو ســـره د دښـــمنۍ او مؤمنـانو مسلمانانو سره د ورورولۍ اصل ته ډيره پاملرنه كول.
- د ټولو رشـــتو او تخصـــصـــاتو په څنګ كې اســـلامي پوهه لازمي اصل ګڼل.
- د اســـتاذانو عقيدوي او فكري روزنه كول، ترڅو زده كوونكو ته سمه عقيده وښيي.

**۹- د خلكو په منځ كې جګړې او اختلافات ختمول:**

لســـګونه كلونه مخكې د اســـلامي خلافت له ورانيدو وروســـته چې صـــليبيان اســـلامي خاورو ته داخل شـــول، هرچاته يې خپل خپل ســـرحدونه معلوم كړل، په دې طريقې يې د يو خلافت ولايتونه او ســـاحې په جدا جدا ملكونو تقســـيم كړل، د دوى په منځ كې يې د ســـرحدونو او داخلي لاس وهنو په نوم تنازعات واچول، آخر يې يو هيواد د بل هيواد په مقابل كې له ځان سره ودرول، نتيجه دا شـوه چې دغه هيوادونه چې په اســـلامي هيوادونو ياديدل، دوى له ټولو نه

اول اوس د اسلام او مجاهدینو دښمنان دي؛ نو اوس چې الحمدلله خلافت دوباره قائم شو دا ټول تنازعات د خلیفه په وجه ختمیږي.

### ۱۰- خلیفه یا د هغه استازی به له خلکو ځان نه پټوي:

اسلامي خلیفه به د مسلمانانو څخه نه پټیږي، که د ټولو مسلمانانو سره د خلیفه د مخ کیدو او ملاقاتو امکان نه وي؛ نو د هغه استازي خو له هرچا سره لیدل کتل کولای شي، باید له خلکو سره یې مستقیمې اړیکې وي، ترڅو ولس(رعیت) د خلیفه او خلیفه د ولس له حاله خبر وي او هم حقوق په سمه توګه اداء کړای شي.

### ۱۱- د عامه شتمنیو، اوقافو او د رعیت د مالونو ساتنه:

اسلامي دولت مکلف دی چې عامه شتمنۍ، اوقاف او د رعیت مالونه وساتي او له بیت المال نه د خیر په ځایونو او د عوامو مسلمانانو د سهولیتونو لپاره مصارف وکړي، مسلمانانو ته د رزق ګټلو حلالې لارې چارې برابرې کړي او دوی ته د ژوند هر ډول آسانتیاوې جوړې کړي لکه:

- لارې پراخول.
- آبادی کول.
- روغتونونه جوړول، تجهیزول او اکمالول.
- مدرسې، ښوونځي او پوهنتونونه جوړول او تجهیزول.

- برقي سیستم، ګاز، تیل، ترانسپورت او داسې نورې شتمنۍ خوندي کول او د رعیت لپاره د شریعت په رڼا کې آسانتیاوې رامنځته کول، تردې چې د شرایطو له مخې به دولت د بې وزلو خلکو لپاره مفت تراسپورت ورکوي او د برق بیلونه به له بیت المالله اداء کوي.

**۱۲- د غنیمتونو ویش:**

د غنیمتونو په ویشلو کې پام کول، خمس(پنځمه برخه) یې مستحقو خلکو ته رسول او نور یې پر مجاهدینو په مساویانه او عادلانه توګه ویشل.

**۱۳- عدل او انصاف:**

په خپله مشرانه سلوکو او ټولو چارو کې عدل او خپل رعیت ته د شریعت په چوکاټ کې ټول ارمانونه پوره کول.

لکه الله تعالی فرمايي: (إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالعَدلِ وَالإِحسَانِ) [ سورة النحل ۹۰ ]

ترجمه: الله پر عدل او ښیګڼه کولو امر کړی دی.

بل ځای کې فرمایي: (وَإِذَا قُلتُم فَاعدِلُوا) ترجمه: چې کله خبره کوئ؛ نو هم عدل په کې کوئ.

له حکماؤ نه نقل دي: (عدل الامام حیاة الرعیة، وروح المملکة، فما بقاء جسد لا روح فیه)

ترجمه: د خليفه عدل د رعيت ژوند او د مملکت ساه ده؛ نو هغه جسد به څنګه پاتې شي چې ساه پکې نه وي.

(عدل الامام فی رعيته يوما واحدا افضل من عبادة ستين سنة)

ترجمه: پخپل رعيت کې دامام يوه ورځ عدل دهغه له شپيتو کالو عبادت نه غوره دی.  (اوپه يو روايت کې سل کاله راغلي دي).

### ۱۴- عامو مسلمانانو، مجاهدينو او داسلامي حکومت مامورينو ته معاشونه ورکول:

په بيت المال کې د غره د شپونکي هم حصه شته، هرچاته خپل حق ورکول د امام کار دی، په کفري ديموکراتو نظامونو کې له کاريګرو او دوکاندارانو نه مالي په نامه ټکسونه ټوليږي او د هغوی هيڅ حقوق ورته نه سپارل کيږي، دا د اسلامي خلافت خصوصيت دی، چې د مسلمانانو اتباعو بچي بچي موړ ساتي او هيڅکله له هغوی نه شوکه نه کوي.

### ۱۵- په اسلامي دولت کې وظايفو لپاره امانتدار او مناسب خلک ټاکل:

اسلامي خلافت به د دندو او وظايفو لپاره ايماندار، ديانتدار او تقوادار خلک انتخابوي او له نااهلو څخه به ډډه کوي، په دې برخه کې به د ډيموکراتو نظامونو په څير په پيسو او واسطو مقررول نه

کوي چې اراده یې بیا د فســاد ســرچینه وي، بلکې د هغوی اعمالو، تقوا او پرهیزګاري او مسلکي توب به په پام کې نیسي.

## دویم - پر خلکو د اسلامي خلافت حقونه

په مخکني بحث کې مو پر اســلامي خلافت او خلیفه د خلکو حقوق بیان کړل دلته غواړو چې په اسلامي شـریعت کې په خلکو د اسلامي خلافت او خلیفة المسلمین تاکل شوي حقونه ذکر کړو چې په لاندې ډول دي:

### اول - بیعت:

د اسلامي خلافت له خلیفه سره د اسلامي نظام د نفاذ لپاره بیعت کول تر ټولو لومړی حق دی، چې د مســلمانانو پر ذمه فرض دی او هرو مرو به یې ترســره کوي، او په دی خبره په قرآن او ســنت کې بې شمیره دلیلونه شته چې موږ یې دلته یو څو دلیلونه مختصر راوړو.

***خلیفه سره د بیعت کولو د فرضیت دلیلونه:***

**اول دلیل:** الله سبحانه و تعالی فرمایي: (يَا أَيُّهَا ٱلَّذِينَ آمَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡ) [ النساء ٥٩ ]

ترجمه: ای مؤمنانو! د الله تعالی او د رســول تابعداري وکړئ او د خپلو امیرانو تابعداري وکړئ.

دې آيت کې الله تعالی د امراوو د اطاعت حکم کړی دی، لـه (وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ) نـه مراد دلتـه (امـام او خليفـه) دی، ابن جريررحمه الله د ابوهريرهرضی الله عنه نـه همدا معنی نقل کړې ده، لکـه چې وايي: (هم الأمراء) لـه اولی الامر نـه اميران مراد دي، فتح القـدير کې امـام شـوکانيرحمه الله وايي: (الائمة، والسـلاطين، والقضـاة وکل من له ولاية شرعية لا ولاية طاغوتية)

ترجمه: له (وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ) نه مراد امامان، بادشـاهان، قاضـيان، او ټول هغه څوک دي، چې هغوی ته شـرعي مشـري حاصـله وي، نه طاغوتي(کفري) مشري.

**دوهم دليل:** رسـول اللهصلی الله عليه و سلم فرمايي: (مَن خَرَجَ مِنَ الطَّاعَةِ، وَفَارَقَ الجَمَاعَةَ، مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً...) [ صحيح المسلم ۱۸۴۸ ]

ترجمه: څوک چې د امام د طاعت نه ووانه، او د مسـلمانانو لـه جماعت نه جدا شو، که دی مړ شو؛ نو د جاهليت په مرګ مړ شو.

**دريم دليل:** رسـول اللهصلی الله عليه و سلم فرمايلي دي: (مَن خَلَعَ يَدًا مِن طَاعَةٍ، لَقِيَ اللَّهَ يَومَ القِيَامَةِ لَا حُجَّةَ لَهُ، وَمَن مَاتَ فِي عُنُقِهِ بَيعَةٌ، مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً) [ صحيح المسلم ۱۸۵۱ ]

ترجمه: چاچې لاس له طاعت نه وويستلو نو دده لپاره به هيڅ حجت نه وي او څوک چې مړ شـو او د هغه په غاړه کې بيعت نه وو؛ نو دی د جاهليت په مرګ مړ شو.

**ثلورم دليل:** رسـول الله ﷺ فرمايي: (مَن فَارَقَ الجَمَاعَةَ قِيدَ خَلَعَ رِبقَةَ الإِسلَامِ مِن عُنُقِهِ إِلَّا أَن يَرجِعَ) [ سنن ترمذی ٤٤٦ ]

ترجمه: څوک چې يوه لويشـت د مسـلمانانو له جماعت نه جدا شـو، ګويا چې ده د خپل څټ نه د اسلام رسی وويستله.

پورته ذکر شـويو نصـوصـو نه معلومه شـوه چې د امام سـره بيعت کول فرض دي او بيعت نه وروسـتـه کيدل په جاهليت او ګمراهی باندې مرګ دی.

**دويم - د خليفه اطاعت:**

مسـلمانان به د اسـلامي خلافت د ټولو حکمونو اطاعت کوي، ځکه اسـلامي خلافت يواځې د اللهسبحانه و تعالی د شـريعت نفاذ غواړي او د اللهسبحانه و تعالی د شـريعت منل او ورته غاړه ايښـودل پر هر مسـلمان فرض دي.

نبیعليه السـلام فرمايلي دي: (عَلَيكُم بِتقوَى اللَّهِ، وَالسَّـمعِ وَالطَّاعَةِ، وَإِن عَبدًا حَبَشِيًّا، وَسَتَرَونَ مِن بَعدِى اختِلَافًا شَدِيدًا، فَعَلَيكُم بِسُنَّتِي، وَسُنَّةِ

الخُلَفَاءِ الرَّاشِـدِينَ المَهدِيِّينَ، عَضُّـوا عَلَيهَت بِاالنَّوَاجِذِ، وَإِيَّاكُم وَالأُمُورَ المُحدَثَاتِ، فَإِنَّ كُلَّ بِدعَةٍ ضَلَالَةٌ) [ سنن ابن ماجه ١ \ ١٥ ]

ترجمه: پرخپلو ځانونو تقوی او غوږ ایښـودل او د خپلو اسـلامي مشـرانو خبره منل لازم کړئ، اګرکه پر تاسـې (دخلیفه لخوا) یو حبشـي غلام وټاکل شـي او تاسـې به له مانه وروسـته دیر زیات اختلافات ووینئ؛ نو (د اختلافاتو په دغه زمانه کې) زما د سـنتو او د خلفاء راشـدینو مهدیینو د سـنتو تابعداري پرځان لازمه کړئ، په دې سنتو کلک خپل غاښونه ولګوئ او له نویو کارونو نه ځان وژغورئ، ځکه هر بدعت ګمراهي ده.

د نبی[علیه السلام] او خلفاء راشـدینو له سـنتو نه یو دا وو چې په یوه جماعت کې راټول شـوي وو، او د نظام په سـاتلو کې یې د تفرقو او ډلو څخه سـخته کرکه درلوده؛ نو د نظام په جوړولو کې نوی کار دا دی چې امت په ډلو وویشـل شـي او له دې نه قرآن او سـنت کې په کلکه منع راغلې ده.

### دریم - د اسلامي خلافت مرسته او له هغه دفاع:

اسـلامي خلافت د اسـلامي نظام ممثل دی او له دې سـره مرسـته د الله[عزوجل] له دین سـره مرسـته ده، الله[عزوجل] د اسـلامي خلافت سـره

